# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۷۰۹ ګڼه / دوشنبه ۱۷ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۲۷مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۱۷ مارچ ۲۰۲۵ میلادي





## د هوا په ګرمېدو د ټاپي چارې چټکېږي

د کانونو او پترولیم وزارت خبر ورکړی، چې د افغانستان په خاوره کې ټاپي ګازو پروژې ۱۰ کیلومتره پایپ لاین بشپړ شوی دی. دیاد وزارت ویاند همایون افغان په یوه خپره کړې ویډیو کې ویلي چې د هوا په ګرمېدو به د دې نللیکې چارې ګړندۍ شي.

نوموړي زیاته کړې چې ټاپي پروژې بشپړول یې لومړیتوب دی او د بشپړېدو د چټکتیا لپاره یې هیلي شته.

ټاپي پایپ لاین یوه لویه سیمه‌ییزه پروژه ده چې د ترکمنستان ګاز د افغانستان له لارې پاکستان او هند ته لېږدوي.

یاده دې شي چې ټاپي پروژه په سیمه کې یو له لویو پروژو څخه ده، چې ۱۸۲۱ کیلومتره اوږدوالی لري او د ۳۳ ملیارد متر مکعب کلني ګازو د لیږد ظرفیت لري.

# افزایش صادرات و واردات کالاها از طریق دهلیز هوایی



وزارت صنعت و تجارت می‌گوید، در سال‌جاری به ارزش ۲۹۵ میلیون دالر از طریق دهلیز هوایی صادرات و واردات صورت گرفته است.

به گفته وزارت صنعت و تجارت، صادرات و واردات افغانستان از طریق دهلیز هوایی از میدان‌های هوایی کابل، کندهار به کشورهای اتریش، اردن، اسپانیا، امارات متحده عربی، اندونیزیا، انگلیس، امریکا، آفریقای جنوبی، آلمان، چین، هند و شماری از کشورهای دیگر صورت گرفته است.

در خبرنامه آمده که ارزش صادرات کشور از طریق دهلیز هوایی به ۱۲۸ میلیون دالر و ارزش وارد واردات... ص۳

## د قوشتېپې کانال د چارو پر چټکتیا ټینګار وشو



د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ سرپرست وزیر عطاءالله عمري وایي، چې د محدودو امکاناتو سره سره د قوش‌تېپې کانال کار په معیاري توګه او چټکۍ سره روان دی. عمري دا څرګندونې په هغې غونډه کې کړې، چې د «قوش‌تېپې کانال د تخنیکي چارو د پرمختګ ارزونې» لپاره د ټولګټو وزارت، اقتصادي معاونیت، د چارو ادارې، استازو او د کرنې، اوبو او انرژۍ وزارتونو او د ملي انکشاف شرکت د ځینو متخصصینو په ګډون جوړه شوې وه.

په دې غونډه کې د دغې پروژې تخنیکي موضوع‌ګانې، تطبیقي ننګونې او د کار د چټکتیا لارې چارې څېړل شوې دي.

## لغمان کې ۴ پروژې ګټې اخیستو ته وسپارل شوې



د لغمان ولایت د پوهنې ریاست مسئولین وایي چې په دغه ولایت کې د ۱۱ میلیونه افغانیو په لګښت د څلورو پروژو چارې بشپړې او ګټې اخیستو ته سپارل شوې دي.

د پوهنې وزارت سرپرست وزیر مولوي حبیب اغا لغمان ولایت ته د خپل سفر په ترڅ کې د یادو پروژو په پرانیستو په ... ۳مخ

## میدان وردګو کې د بیسکویټو دوو کارخونو کار پیل کړ



په میدان وردګو ولایت کې د بیسکویټ جوړولو دوو کارخونو فعالیت پیل کړ.

د صنعت او سوداګرۍ ریاست مسئولین وایي، چې دغه فابریکې د سرپرست حکومت له بشپړ ملاتړ څخه برخمنې دي او د ولایت د اقتصادي پراختیا لپاره مهم ګام بلل کېږي.

د کارخونو مسئولینو ویلي، ۳مخ



## سرمقاله

# مزیت‌های اقتصادی، وابسته به شاهراه‌های ترانزیتی

تاریخ اقتصادی جهان مبین آن است که راه های مواصلاتی و وسایط حمل و نقل یکی از اساسی ترین ابزار حیات اقتصادی، اجتماعی، فرهنگی و سیاسی کشورها است که ضرورت و نیازمندی‌های بشر را در هر زمانی از تاریخ مرفوع کرده است.

چنانی‌که همه می‌دانند همین راه هاوشاهراه های تجاری وترانزیتی اند که زمینه انتقال کالا ها و مسافران از یک مکان به مکان دیگر و یا از کشور مبدا به کشور مقصد را ممکن می‌سازند، همان‌گونه که رگ‌های خون در بدن نقش حیاتی دارند، راه‌ها و شاهراه‌های ترانزیتی و تجاری نیز برای حیات اقتصادی کشورها، نقش حیاتی ایفا می‌کنند.

خوشبختانه کشور عزیز افغانستان با داشتن مؤقعیت ویژه جغرافیایی و راه‌های ترانزیتی پل ارتباطی میان آسیای مرکزی و جنوبی است که این مؤقعیت سبب شده تا افغانستان دارای بنادر متعددی مانند بندر حیرتان، آقینه، شیرخان بندر، اسپین بولدک، اسلام قلعه، تورغندی، دوغارون ، تورخم و... باشد که موجودیت چنین بنادر، افغانستان را در بهترین موقعیت و مرکز ترانزیت منطقه قرار داده است.

بناءً اگراین راه‌ها وشاهراه‌های ترانزیتی توسعه و گسترش یابد، بدون شک افغانستان در آینده نه چندان دور نه تنها به مدارج بلند اقتصادی خواهد رسید، بلکه زمینه اشتغال نیز برای نسل جوان کشور مساعد خواهد شد.

بنابر این این مزیت‌های اقتصادی و ترانزیتی سبب شده تا نهادهای ذیربط به ویژه وزارت احیا و انکشاف دهات به توسعه بیشتر جاده‌ها و شاهراه‌ها به ویژه جاده واخان - بدخشان که برای افغانستان نهایتاً مهم است را گسترش و توسعه دهد، زیرا جاده واخان نه تنها از بُعد اقتصادی برای افغانستان ارزشمند است، بلکه واخان اهمیت راهبردیست و این کشور را با کشور چین و کشورهای منطقه وصل می‌کند. ص۳

## کابل ښاروالۍ د ښاري فرهنګ عامولو لپاره یو شمېر کتابونه وړیا ووېشل



شریعت: کابل ښاروالۍ پرون د ښار د منظم والي او ښاري فرهنګ عامولو په پار یو شمېر کتابونه وړیا ووېشل، چې ژبه او مخاطبین یې تر ډېره ماشومان وو. دغه کتابونه چې ماشومانه ادبیات او روزنیزې کیسې یې درلودلې، په ځانګړې توګه د ښار پاک ساتلو، نیالګیو پاللو او چاپېریال خوندیتوب... ۳مخ

## آغاز کار ساخت یک شبکه آبرسانی صحی در غزنی

مسئولین محلی ولایت غزنی می‌گویند، کار ساخت یک شبکه آب‌رسانی صحی به ارزش ۷ میلیون ۳۵۵ هزار افغانی در این ولایت آغاز شده است.

بربنیاد خبرنامه، این شبکه آب‌رسانی صحی در مربوطات ولسوالی «مُقُر» ولایت غزنی قرار است ساخته شود. ص۳



## سرپل او غور کې د زرګونه جریبه ځمکې ارزونه شوې



د عدلیې وزارت وایي، چې د غور او سرپل ولایتونو د ځمکو له غصب څخه د مخنیوي تخنیکي پلاوو په خپلو غونډو کې د نږدې ۷ زره جریبه ځمکې ارزونه کړې ده.

د یاد وزارت د معلوماتو له مخې، د غور د مرکز ولسوالۍ اړوند په لقک سفیدک کلي کې د ۵ زره ۵۰۰ جریبه... ۳مخ


ښځه د ښکلا مظهر او د کور ډېوه ده ۲

روژه د برکت او رحمتونو میاشت ۲

د پاکستان په اړه د ټرمپ وروستۍ څرګندونې او د واشنګټن او اسلام‌آباد پر اړیکو یې اغېزې! ۲

# ښځه د ښکلا مظهر او د کور ډیوه ده

**حیات الله حلیم**

دا یــو څرګند حقیقت دی چې ښــځه له بابا دم نه تر دې دمه د انســاني ژوند په اوږده او ســتړي ســفر کې ، همګام او هم ســفر، د ژوند په ټولــو ابعادو کې د نارینــه په خوا پورې د یــوې وفادارې او خوا خوږې ملګرې په توګــه فعاله پاتې شــوې او په ورین تندي یې د ژوند ټولې ناخوالې، هســکې ټیټې، خوږې ترخې پــه پوره زغم ،حوصلــه مندۍ له خپل خاوند ســره منلې او تېــرې کړې او پرته له دې چې له یو بل څخه بیزارشــي په خوشــحالۍ سره یې د بشــر د بقا پنډ (د انســاني هستۍ دغه ســتره کتله) په امانت ډول د مقصود تر سر منزل یانې تر نن پورې را رسولې ده، نو په یقین ســره ویلای شو چې د ښځې موجودیت له نارینه او د نارینــه موجودیت به له ښــځې پرته هېڅ کومه مانا ونه لري، ځکه د بشــر د بقا لپاره نر او ښــځه دواړه یو د بل لازم او ملزوم پېژندل شــوي دي.

که د ښــځې موقف د تاریخ په اوږدو کې وڅېړو، نو ښــځه د تاریــخ په مختلفو پړاوونــو کې له عجیبــو زړه بوږنوونکو تاوتریخوالو ســره مخ شــوې ، د هند په پخوانیــو ټولنــو کې د دوی د مذهبي ایجاباتو له مخې ښــځه له ټولو ســخت او لوړ عذاب ســره مخ وه، ځکــه په بېګناه ډول به د خاونــد د مرګ پر مهال دا هم په هغه اور ژوندۍ ســتی کېدله چې د مذهبي مراســمو لــه مخې به یې د خاوند د جسد د ســوځولو لپاره بل شوی و،له دې لوی او ځورونکی عذاب له اسلام د مخــه د عربو د جاهلیت د دورې رواجونه وو، چــې په کور کې به نوې زیږېدلې ماشــومه د جاهلانــه غیرت په حکم د دې لپاره چې تربــوران یې د زیږون پیغور ورنه کړي ژوندۍ ښــخېدله او ورکېدله چې دغه بې رحمه رواج د سرور کاینات حضرت محمد مصطفی ص په واســطه له منځــه لاړ او همدارنګه په ځینو ټولنو کې به شــاقه او ســخت کارونه ښــځو ترســره کول او نارینه به د خیر په غونډۍ ورته ناســت او ســیل به یې کاوه، له دې ټولنو په ځینو کې به د کوژدن پر مهال په ښــځه دا شرط هم ایښودل کېده چې که یې مېړه ښه و نه، ساته نو طلاق کېږي به، خو دا چې ولــې د تاریخ په اوږدو کې پورته ټول کرکجــن او منفور رواجونه په ښــځه تحمیل شــوي د جهالت د رواجونو زیږنده به یې وبولو او بس، په دې خو هر څوک پوهېږي چې ښــځه هم د نارینه په شــان د ټولو انســاني احساساتو او ادراکاتــو درلودونکې ده ، که فزیــکل له نارینه کمزورې ده خو احساســات ادراکات اوعاطفه یــې بیا تر نارینه ډېره قوي او پیاوړې ده، خو داچې ولې اوس هم د ښــځې مقام ، موقف او ټولنیز حیثیت د نرۍ پــه بېلابېلو هېوادونو کې لوړ او بې رحمــه توپیر لري، یوه تر پوښــتنې لاندې موضوع ده ځکه پــه ځینو ټولنو خصوصاً افریقایي هېوادونو کې همدا اوس هم ښــځې ته د دویم پیدا شوي کس پــه نظر کتل کېږي بېځایه ځــورول کېږي وهل کېږي او ډبول کېږي.

د ښــځو پــه مقابل کې د غیــر مذهبي ټولنــو دا توپیري چلن یوه داســې پېچلې مســئله ده چې تر اوســه د نړۍ د بشــري حقونو په قوانینو کې نه ده اندول شوې ځکــه همدا اوس هم وینــو چې د نړۍ په یو شــمیرغیر اســلامي هېوادونو کې ښــځې ماشــوم پر شــا تړلی کروندو کې کار کوي خو د دې ترڅنګ په اسلامي هېوادونــو کې بیا د ښــځو ټولنیز موقــف خوندي او په اســلامي چوکات کې له خپلو حقوقو برخمنه ده.

که ښــځه په عاطفي لحاظ وڅېړل شــي نو په انساني ژوند کې ښځه ، د ښکلا او ښایســت مظهر او ترڅنــګ یې د خپل خاوند لپاره د مینې محبت او ښــکلا هغه ډیــوه ده چې کورنۍ یې پرې رڼا ده نه یــوازې دا، بلکې د خپلو اولادونو لپاره د مینې،عاطفې او صمیمیت هغه ســمبول ده چې ماشــوم یې له زیږون وروســته د لومړۍ پرســتارۍ په توګــه پېژني، ځکه هغه عاطفه چې ښــځه یې د اولادونو پر وړانــدې د مور په وجود کې لري د پلار په وجود کې نشــته نــو ځکه یې حقوق هم تر پلار زیات ښودل شوي.

په هرصورت د تاریخ په اوږدو کې داســې ټولنې هــم موجودې وې چې په هغه کې مورســالاري یا ښــځه ســالاري وه او ښــځه د کورنیو چارو واکمنه وه چې پــه پخوانــۍ آریانا کې د ښــځو ژوند له هره پلــوه تضمین او له نارینه ســره یې مســاوي حقوق درلودل او په همدې دورو کې د مور په نامه ښــځه سالاري هم موجوده وه.

نو ویلای شــو چې همدا ښــځه ده چې د بشــربقا او پایښــت ته یــې د مور په بڼه تــر نن پورې ادامه ورکړې، نو لازمــه ده چې له هــرډول تاوتریخوالیو څخه بچ او خوندي وســاتل شــي ، یو شــمېر هغه کسان چې ســلو کې انحراف لري نشــي کولای چې د کورني ژوند له اصولو سره سم پرمخ ولاړشــي نو پر بیځایه تاوتریخوالیو د کورنۍ شــیرازه ویجــاړوي ،ګاونډیان پر ځان را خبروي او کله نا کله خبره تر جدایۍ او طلاق پورې رســوي له ټولو ځورونکي شببه هغه وي چې د دوی جدایي د دوی په اولادونو داســې ژور روحــي او رواني اغېز غورځوي چې د ژونــد ترپایه یې له یاده نه ځي.



# د پاکستان په اړه د ټرمپ وروستی څرګندونې او د واشنګټن او اسلام‌آباد پر اړیکو یې اغېزې!

**ثناءالله عمران**



فاریــن پالیســي پهخپلــه تازه شــننه کې لیکلــي چې دوې اوونۍ وړاندې د متحده ایالاتو ولسمشــر له پاکســتاني ریاســت څخه د مننې ســره ســره، د نــوي امنیتي ملګرتیا تمه مهکوئ.

خپرونه د مــارچ په ۴ مــه کانګرس ته د ټرمپ د وینــا په اړه زیاتوي چې د متحده ایالاتو ولسمشر ډونالډ ټرمپ په پاکستان کې د داعش خراســان د یوه غړي محمد شــریف الله د نیولو او بیا د پاکســتان له لوري امریکا ته د ســپارلو د مننې له امله ډېرى خلک حیران کړل.

محمد شــریف الله چــې د جعفر په نامه هم مشــهور دی ویل کېږي ، د ۲۰۲۱ ز کال اګســت میاشــت کې د کابل هوایي ډګــر په هغه برید کې پــه لاس لرلو تورن دی، چــې شــاوخوا ۱۷۰ افغانان او ۱۳ امریکایــي پوځیــان پهکــې وژل شــوي وو.هغه مهال داعشــي خوارجــو د برید مسئولیت منلی و.

بلخوا یو شــمېر افغان رسنیو د کابل د بین المللي هوایــي ډګر د برید د اصلي عامل پــه اړه لیکلي چې محمد شــریف الله د کابــل هوایي ډګر د بریــد اصلي طراح نه دی. دوی زیاتــوي چې د ۲۰۲۳ز کال د اپرېل پــه پنځمو او نهمو نېټو افغان امنیتي ځواکونــو لهخــوا پــه هــرات او نیمروز ولایتونــو کې د عملیاتو پــر مهال د ډاکټر حســین او عبدالله کابلي په نوم د داعش ډلــې د دوو غړو له وژل کېدو وروســته د ســپینې مانۍ ویاند وویل چې دا د کابل هوایــي ډګــر د برید طراحــان وو او چې د افغــان امنیتــي ځواکونو پــه عملیاتو کې وژل شوي دي.

د امریــکا د دفــاع وزیر، د ملــي امنیت سلاکار مایک والټز د پاکســتان د بهرنیو چارو وزیر اسحاق ډار ســره په ټیلیفوني خبرو کې د پاکســتان له یــادې نیونې او تســلیمۍ مننــه وکړه. تر هغه وروســته د پاکســتان لومړي وزیر شــهباز شریف له واشــنګټن ســره د امنیت پــه برخه کې د اسلام آباد پر نېږدې همکارۍ ټینګار وکړ.

د فارین پالیســي د معلوماتو پر بنســټ د شریف الله له ســپارلو وروسته پاکستاني چارواکي هیله من شــوي چــې ګواکي د ټرمــپ اداره چمتو ده له یاد هېواد ســره د ترهګرۍ ضد مبــارزه کې خپلې همکارۍ پراخې کړي. پاکستانی حکومت تمه لري د دې همــکارۍ په لړ کــې F-۱۶ جیټ الوتکې ترلاسه کړي.

دخپرونــې به باور لــه افغانســتان څخه د امریکا له شــړلو وروســته پر پاکســتان یــې ســتراتېژیک تمرکــز پیکه شــوی او همدارنګــه لــه اوو کلونــو راهیســې پر پاکســتان د امریکا اکثریت امنیتي مرستې بندې شــوې چې دا چــاره د دوه اړخیزو همکاریــو لپاره امکانــات محدود کوي، خــو په تېــرو څو کلونــو کې پاکســتاني چارواکــو هڅه کړې چــې د خوارجو په اړه د متحده ایالاتــو د مخ په زیاتېدونکي اندېښنو څخه ګټه پورته کړي.

خپرونــه زیاتــوي دا به له وختــه مخکې وي چې د شــریف الله د ســپارلو په اړه دوه اړخیزې همکارۍ ته د تروریزم ســره د مبــارزې پــه برخه کې نــوي ملګرتیا و انګیرو. د واشــنګټن له نظره له هند سره د متحده ایالاتو د امنیتي اړیکو ژورول او د چین له لوري له پاکســتان سره د اړیکو نږدېوالــی د همکارۍ امکانات او هڅونې محدودوي. هېــره ده نه وي چې د ټرمپ په اداره کې د پاکستان جدي منتقدین هم لږ نه دي.

فارن پالیســي وړانــدې لیکــي، متحده ایالات او پاکستان دواړه د داعش خراسان څانګــې ته د یو ګواښ په ســترګه ګوري، خــو دوی د پــراخ ګواښ په اړه ســره هم نظره نه دي. اســلام اباد ته اصلي اندېښنه خوارج نــه بلکــې د پاکســتان تحریک طالبان دي.

اوس مهال د پاکســتاني طالبانو تحریک متحــده ایالاتو ګټو ته کــوم تهدید نه دی متوجه کړی خو که د امریکا او پاکســتان ترمنځ امنیتي همــکاري پیاوړې کېږي دا ښــایي ټي ټي پي متحده ایالاتو ته یو ځل بیا د یوه ګواښ په ســترګه وګوري – داسې یوه سناریو چې د ټرمپ اداره یې مخنیوی کوي.

سربېره پردې، متحده ایالات له افغانستان څخه بهر د خوارجو د مخ په زیاتېدونکي ګواښ په اړه اندېښــمن بریښــي، د ټرمپ اداره ممکن د ســیمې څخه بهر هېوادونو ســره د دې ډلــې د پراخېدونکــي نفوذ د مخنیوي پــه موخه د ملګرتیا پــه لټه کې وي.

بالاخــره په افغانســتان کې بــاور دا دی چې که واقعاً د ټرمپ اداره په ســیمه کې د خوارجــو د پدیدې د لــه منځه وړلو په لټــه کې وي، نو د بایــډن د ادارې خلاف کوټلي اقدمات ترســره کړي او د پاکستان له لوري د داعش سره د مبارزې تر عنوان لاندې پــر ســتراتیژیک تجــارت دې نه غولېږي.

په پاکســتان کې د محمد شــریف شتون او نیول کېدل پهخپله پر پاکســتان پوښتنې راولاړوي او هغه راپورونه تصدیقوي چې خراســاني خوارجو خپلې ځالې پاکستان تــه انتقــال کړې او لــه هغه ځایــه خپل بریدونه په ارام زړه پلان او ترسره کوي.

# روژه د برکت او رحمتونو میاشت

**مولوي ضیاء الحق حسان / لسمه برخه**




روژه لــوی رب پــه زیاتــو ځانګړتیاوو نازولې دلته یې ځینــې ځانګړتیاوې ذکر کېږي.

۵- روژه نفــس، ژبــه او نــور اندامونه ساتي رســول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایي:

روژه ډال ده څوک چې روژه ونیســي نو فحش وینــا دې نه کوي او د جاهلانو پر شــان دې عمل نه کوي. کــه چېرته کوم ســړي ورســره جنګ کولو او یایې ورته کنځلــې وکــړې، نو ورتــه ودې وایي زه روژه نیونکی یم.

٦- روژه د صبر درس ورکوي، نبي کریم صلی الله علیه وســلم فرمایي:

روژه نیم صبر دی.

٧- روژه د ریــان لــه دروازې د جنت د دخول ســبب کېږي، نبــي کریم «ص» وفرمایل: «پــه جنت کې یــو دروازه ده چې «ریان» نومېــږي، د قیامت په ورځ بــه روژه داران له دې دروازې داخلېږي، لــه هغــوی پرته بــل څوک بــه ورڅخه داخــل نه شــي. اعلان به وشــي: روژه داران چېرته دي؟ نو هغوی به راپاڅېږي او لــه همــدې دروازې بــه ننوځي. کله چې هغوی داخل شي، دا دروازه به بنده شــي او بیا به هېڅوک ورځخه داخل نه شي.»

٨- د روژه تــي د خولــې بــوی اللــه تــه له مشــکو خــوښ دی، نبــي کریم «ص»وفرمایــل: «د روژه دار د خولــې بوی د الله تعالی په نزد د مشــکو له بوی څخه خوږ دی.»

٩- د روژه تــي لپــاره دوه خوشــحالۍ دي نبــي کریــم «ص» وفرمایل: «روژه دار تــه دوه خوښــۍ دي: کله چې روژه ماتــۍ کوي، نو د خپل روژه ماتي له امله خوشــحالېږي او کله چې لــه خپل رب ســره ملاقات کوي، نو د خپلې روژې له امله به خوشحاله وي.»

١٠- روژه د هغــو حالتونو څخه ده چې دعا په کې قبلېږي.

نبي کریم «ص» وفرمایل: «بېشکه روژه دار تــه د روژه ماتي پر مهال یوه داســې دعا ورکړل شوې چې نه ردېږي.»

١١- روژه مسلمان هڅوي چې د رمضان په میاشــت کــې د نبي کریــم «ص» له زیات سخاوت څخه پیروي وکړي.

نبي کریــم «ص» له ټولــو خلکو زیات ســخي و او په رمضان کې به هغه «ص» لــه ټولو زیــات ســخاوت کاوه، په هغه وخت کــې چې جبریــل علیه الســلام ورسره ملاقات کاوه.

١٢- د قرآن کریم نزول په دې میاشــت کې شوی.

الصوم جنة صفحه ۳۸

**نور بیا...**

# د نیمروز د ټرافیکو مدیریت ۳۲ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي



د نیمروز ولایت د ترافیکو مدیریت مسئولینو خبر ورکړی، چې یاد مدیریت روان کال څه باندې ۳۲ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي.

په یاد ولایت کې د امنیې قومندانۍ د ترافیکو عمومي مدیر مسئولین وایي، چې دا عواید د جوازونو او جوازسیرونو د وېش او اړوند خدمتونو له لارې راټول او د دولت خزانې ته سپارل شوي دي.

د مسئولینو په خبره سږ کال ۱۱۲۸ موټر چلوونکو ته لایسنسونه او ۳ زره ۲۷۰ جوازسیرونه وېشل شوي، دغه راز ۴۴ ترافیکي پېښې څېړل شوي او د پېښو د شکمنو کسانو قضیې محکمې ته سپارل شوې دي.

## هر مسلمان در مسلک خویش علوم...

کامیابی دنیوی و اخروی دعوت می‌کند.

در این گردهمایی که در مسجد جامع ولایت کندهار صورت گرفت، رییس پوهنتون این ولایت و معاون شورای علمای این ولایت نیز بر ضرورت کسب علوم دینی و عصری تاکید کرده‌اند.

این در حالی است که پیش از این نیز سرپرست وزارت تحصیلات عالی بر ضرورت فراگیری علوم دینی و عصری در کشور تاکید کرده است.

## لغمان کې ۴ پروژې ګټې اخیستو ته...

مراسمو کې ویلي:«اسلامي امارت ژمن دی چې د تعلیم او وطن د پرمختک لپاره به بې حده کوښښ کوي».

نوموړي زیاته کړې چې لغمان ته یې د سفر موخه د شخصي پانګوالو تشویقول دي، څو د پوهنې سکټور په برخه کې د وطن بچیو ته پانګونه وکړي.

نوموړي ټولو کورنیو او بهرنیو پانګوالو ته داډ ورکړ چې وطن کې امنیت دی، په هره برخه کې چې پانګونه کوي دوی ورته زمینه برابره کړې ده، همداراز یې وویل چې تراوسه یې په ټول هېواد کې د موسساتو په همکارۍ ۱۴۰۰ ښوونځیو ته ودانۍ جوړې کړي او ځینې یې بیا ځلي رغولي دي، راتلونکی کال به په دې برخه کې لغمان ته هم ځانګړې پاملرنه وکړي.

ورته مهال د یاد ولایت د پوهنې رییس مولوي شاه جهان ساجد ویلي چې په یادو پروژو کې د پوهنې ریاست لپاره د یوه جومات او دریو ښوونځیو لپاره د ودانیو د جوړولو چارې شامل دي، چې ټول لګښت یې ۱۱ میلیونه افغانۍ دی چې د هېواد د یو شمېر پانګوالو له لوري ورکړل شوی دی.

## کابل ښاروالۍ د ښاري فرهنګ عامولو لپاره...

ته په کې ځانګړې پاملرنه شوې وه.

د کابل ښاروالۍ استازی او سلاکار نعمت الله بارکزي د جوړ شوي نندارتون په اړه رسنیو سره په خبرو کې ویلي چې له څو میاشتو راهیسې، چې دا پروسه به راتلونکي کې نوره هم دوام وموومي، تر څو وکولی شو، کابل ښار کې کلتوري مسایل قوي کړو.

ښاغلي بارکزي د زرګونه ټوټه یي کڅوړو خبره هم وکړله، چې په وینا یې په نږدې راتلونکي کې به دا لړۍ هم پیل کړي، چې ورسره به په یو شمېر ناروغیو کې کمښت هم راشي. ددغه ادارې د خپرونو ریاست، د عامه اړیکو او عامه پوهاوي امر محمد یاسین امین امارتي ورځپاڼو سره په خبرو کې د دغه کار پیغام د ښو ساحو رامنځته کولو، ښاري فرهنګ مراعتول او د ښاریانو هوساینه وبلله. ښاغلي امین له کتاب اخیستونکو وغوښتل چې کتابونه دې کور کې له ماشومانو او نورو سره شریک کړي او هغوی دې هم په ښاري فرهنګ پوه کړي. دغه نندارتون ته د حسیب الله په نوم یو ماشوم چې بوټان یې رنګول؛ امارتي ورځپاڼو ته وویل، چې دا کتابونه کور ته ورم او زما نور واړه ورونه هم دي، هغوی سره یې خبرې شریکوم.

ادبي او فرهنګي شنونکی نعمت الله سرحدي د حکومت دغه ډول کړنې ګټورې ګڼي او وایي چې ماشومان نسبت لیک ته له انځوره په اسانه زدکړه کولی شي او تر ډېره یې په ذهن کې پاتې کېدلی شي. ښاغلی سرحدي زیاتوي چې ماشومان ډېر ژر په یو کار عادت کېدلی شي او که حکومت یې په همدغه وخت کې د لیک لوست دغه برخې ته پاملرنه وکړي، نو یو روښانه راتلونکی به ولري، چې افغانستان به نه یوازې لوستي راتلونکی ولري، بلکې سالم چاپېریال به هم رامنځته شي.

**تاج محمد بهار**

## د ماشومانو د مړینې په اړه د بې پولې...

په بشپړه توګه ردوو او له اړونده ادارې بیا ځلې غوښتنه کوو چې هر رسمي خپرېدونکی راپور یې باید د حقایقو او همغږۍ پر اساس وي تر څو خلکو ته بې ځایه اندېښنې جوړې نه کړي. ښاغلي امرخېل وایي، چې د عامې روغتیا وزارت د شري ناروغۍ پر وړاندې په تېرو څو کلونو کې خورا مهم ګامونه پورته کړي، د واکسیناسیون کمپاین په سراسري توګه تر سره شوی او د ۲۰۲۵ میلادي کال په جریان کې به د شري د واکسین بل ملي کمپاین هم تر سره شي چې په جریان کې به یې ۱۶ میلیونه ماشومانو ته د شري پر وړاندې واکسین تطبیق شي. هغه زیاته کړه، چې د تېر کال په جریان کې د ټولو واقع شویو طغیاناتو پر وړاندې پر وخت ځواب ویل شوی او اوس هم د مختلفو روغتیایي برخو له لوري په منظم ډول د شري ناروغۍ پر وړاندې مبارزه روانه ده. نوموړي وویل، چې لا هڅه کېږي تر څو د شري پر وړاندې د ماشومانو د واکسیناسیون کچه لوړه او د روغتیا پالنې خدمتونه په بشپړ ډول وړاندې کړي ، که څه هم په افغانستان او د نړۍ په ځینو برخو کې دا او ځینې نورې ساري ناروغۍ خپرې شوې، خو افغانستان د روغتیایي وضعیت په نظر کې نیولو سره د دې ناروغۍ پر وړاندې منظمه مبارزه تر سره کوي. ده زیاته کړه، چې د ځینې نړیوالو اداراتو له لوري دا ډول بې اساسه اطلاعات به د خلکو ترمنځ بې ځایه ویره او رواني ستونزې رامنځته کړي، د عامې روغتیا وزارت په ټولو داخلي او نړیوالو سازمانونو او اداراتو غږ کوي چې د عامې روغتیا وزارت سره په همغږۍ د دقیقو معلوماتو پراساس خپل اعلانات او راپورونه وړاندې کړي. په پای کې د عامې روغتیا وزارت ټولو هېوادوالو ته ډاډ ورکوي چې د واکسیناسیون پروګرامونه به پر وخت او په پراخه کچه تطبیقېږي ، د شته ستونزو د حل په موخه هڅې تر سره کېږي او وقایوي تدابیرو ته به لا پاملرنه کېږي تر څو د شته واقعاتو څخه هم مخنیوی وشي چې دا د شري ناروغۍ د خپرېدو پر وړاندې یوه ستره او مؤثره ستراتیژي ده.

**سمیع الله مومند**

## آغاز کار ساخت یک شبکه آبرسانی...

ساخت یک ذخیره‌گاه آب به ظرفیت ۶۰ متر مکعب، نصب بیش از ۱۳۰ شیردهن آب، منتاژ چندین تخته سولر، و پایپ‌دوانی نزدیک به ۷ هزار متر ساحه از بخش‌های شامل این پروژه است. در خبرنامه گفته نشده که هزینه ساخت این پروژه از طریق کدام منبع تمویل می‌شود. با تکمیل کار ساخت شبکه آب‌رسانی یادشد، زمینه دسترسی ۲۶۰ خانواده به آب آشامیدنی صحی، فراهم خواهد شد.

این در حالی است که هفته گذشته نیز کار چند شبکه آب‌رسانی صحی در مربوطات ولایت غزنی آغاز شده بود.

## د لوګر پوهنتون د لیلیې او خوړنځي...

د نوموړي په وینا د یادې پروژې چارې به نږدې راتلونکي کې بشپړې شي، چې ورسره به د سیمې یو شمېر کسانو ته هم د کار زمینه هم برابره شي.

## نورستان کې ۱۱ زره هکتاره ځمکه...

شوي دي. د نورستان سرپرست والي زین العابدین عابد ویلي، چې د دغه ولایت د ځنګلونو د ساتنې ترځنګ ۲۵۰۰ هکتاره نور ځنګلونه په بېلابېلو برخو کې رغول شوي دي. نوموړي ویلي، د دې ترځنګ یې د اوبو حوزونه جوړ کړي او ۲۵زره مالدارانو ته یې مرکز او ولسوالیو کې حیواني خوراکي توکي هم وېشلي دي.

## نورستان کې ګرانبیه ډبرې...

د نورستان د کانونو او پټرولیم رییس سید رحیم عمیر باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي چې له یادو قیمتي ډبرو څخه ۶ میلیونه ۴۶۷ زره ۸۶۶ افغانۍ د دولت خزانې ته سپارل کېږي.

د نوموړي په وینا، دغه بولۍ د سوداګرو او پانګوالو له پراخ هرکلي سره مخ شوې او له دې وړاندې هم په ختیځ او لوېدیځ نورستان کې ورته بولۍ ترسره شوې وې.

## ننګرهار کې د موټیا ګلانو نمایشي...

د نوموړي په وینا چې هره نمایشي قطعه ۱۰۰۰ بوټي، کرنیز وسایل، تخمونه او سپینه کیمیاوي سره لري، چې د بزګرانو د اقتصادي پیاوړتیا لپاره ګټور ثابتېدای شي.

د کرنې ریاست مسوولینو د دې طرحې د عملي کېدو په اړه خوښي ښودلې او ویلي یې دي چې د موټیا ګلانو کښت به پر چاپېریالي ښکلا او د اقتصاد پر ودې مثبت اغېز ولري.

## افزایش صادرات و واردات کالاها...

به ۱۶۷ میلیون دالر امریکایی می‌رسید.

وزارت صنعت و تجارت افزوده، اقلام صادراتی کشور شامل میوه‌جات خشک، زعفران، انجیر، خشک‌وتازه، عناب، جلغوزه سیاه، البسه جدید و صنایع‌دستی است.

همچنان این وزارت تاکید کرده که اقلام وارداتی کشور شامل دوا و وسایل برقی می‌شود.

این در حالی است که امارت اسلامی به هدف ایجاد سهولت به تاجران کشور در صادرات و واردات اموال تجارتی‌شان دهلیزهای هوایی ایجاد کرده است.

## میدان وردګو کې د بیسکویټو دوو...

چې دوی ۲ میلیونه افغانۍ پانګونه کړې او په ۲۴ ساعتونو کې تر ۱۳۰۰ کیلوګرامه بیسکویټ تولیدوي.

## بادغیس کې د لوړ ټناژ تله...

هڅې او همکارۍ دوام ومومي.

مسئولینو وویل چې د دې لوړ ټناژ تلې په نصبولو د درنو بارونو کنټرول د دې سبب کېږي، چې سړکونه او پلونه له زیږښت، درزونو او تخریب څخه وساتل شي او د عوایدو په راټولولو کې به شفافیت راشي.

د یادونې وړ ده چې له دې وړاندې هم په ځینو نورو ولایتونو کې د لوړ ټناژ د کنټرول لپاره تلې نصب شوې دي.

## سرپل او غور کې د زرګونه جریبه...

ځمکې او د فیروزکوه ختیځ لوري کې ۳۴۱ جریبه ځمکې او په دولتیار ولسوالۍ کې د ۱۷۸ جریبه ځمکو دوسیې ارزول شوې دي.

دغه راز د سرپل د کوهستانات ولسوالۍ اړوند په سردره کلي کې د څه باندې ۲۴۲ جریبه ځمکو دوسیه تر بحث او ارزونې نیول شوې دي.

یاده دې وي، چې د دې جلا ناستو په ترڅ کې پرېکړه شوې چې د یادو دوسیو په اړه دې املاکي څېړنې ترسره او پایلې دې راتلونکې غونډه کې وړاندې شي.

## مزیت های اقتصادی، وابسته...

به تازگی وزارت احیا وانکشاف دهات از آغاز کار فاز دوم سرک واخان - بدخشان خبر داده و خاطر نشان ساخته، کار این سرک به طول ۷۱ کیلو متر وعرض بیش از ۷ متربه ارزش ۱۴۳ میلیون افغانی با شرکت افغان صداقت امضا شده است.

ملا محمد یونس آخند زاده وزیر احیا و انکشاف دهات گفته که خوشبختانه شاهد قرار داد پروژه ترمیم فاز دوم سرک واخان - بدخشان هستیم و این در حالیست که حکومت‌های گذشته در این ساحه هیچ‌گونه توجه نداشتند و امارت اسلامی به خصوص وزارت احیا و انکشاف دهات، در پهلوی دیگر فعالیت‌هایش این بار اقدام به ساخت این سرک کرده است که از لحاظ اقتصادی و تجاری میان افغانستان و کشور چین بسیار ارزشمند است.

گفتنیست کار فاز اول سرک واخان بدخشان نیز با همین شرکت به طول ۵ کیلومتر با هزینه ۱۸۱ میلیون افغانی امضا شده بود که تا اخیر سال آینده به بهره برداری سپرده خواهد شد.

توجه به راه‌های ترانزیتی وتجاری، همچنان گسترش و توسعه این راه‌ها از بُعد اقتصادی و راهبردی نهایتاً با ارزش است، این مزیت‌ها سبب شده تا نظام‌ها در جهان بیشتر روی این شاخص‌ها توجه کنند.

ازاینرو جاده واخان نیز از بُعد اقتصادی برای افغانستانی که تازه از جنگ بیرون شده، نهایتاً ارزشمند وحایز اهمیت است، زیرا زمانی که روی اتصال منطقوی بیشتر کار شود، منطقه واخان برای چهار کشور؛ افغانستان، پاکستان، تاجیکستان و چین خیلی‌ها مهم است.

Shariat Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Monday 17 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 709

### سرپرست وزارت تحصیلات عالی:

# هر مسلمان در مسلک خویش علوم عصری را حاصل و ارزش علوم دینی را حفظ کند

شیخ ندا محمد ندیم، سرپرست وزارت تحصلات عالی می‌گوید، هر مسلمان باید با در مسلک خویش علوم عصری را حاصل کرده و ارزش علوم دینی را نیز حفظ کند.

سرپرست وزارت تحصیلات عالی که در گردهمایی بزرگ استادان پوهنتون و محصلین ولایت کندهار در مرکز این ولایت صحبت می‌کرد، از استادان خواسته که در پرورش سالم اولاد وطن، سعی و کوشش کنند.

او همچنان تأکید کرده که کتاب الله تعالی قانون نظام اسلامی بوده و انسان را به... ص۳

## د ماشومانو د مړینې په اړه د بې پولې ډاکټرانو راپور رد شو

**شریعت:** ورمه ورځ د بې پولې ډاکټرانو ادارې له لوري د شري ناروغۍ اړوند راپور خپور شوی او په کې ویل شوي چې افغانستان کې د شري یا سرخکان ناروغۍ واقعات څو چنده زیات شوي او هره ورځ یو ماشوم له دې ناروغۍ خپل ژوند له لاسه ورکوي.

د عامې روغتیا وزارت ویاند ډاکټر شرافت زمان امرخېل امارتي ورځپاڼو ته ویلي، چې نوموړی راپور د حقیقي ارقامو پر اساس نه دی چمتو شوی او یواځې تخمین شوي ارقام دي چې په راپور کې ورڅخه استفاده شوې ده، نو په همدې اساس موږ دا راپور... ۳مخ

## د چاپېریال ساتنې نړیوال بنسټ ۱۰ میلیونه ډالره مرسته کړې

د چاپېریال ساتنې ادارې مسئولینو ویلي چې د چاپېریال ساتنې یوه نړیوال بنسټ د ځنګل کرنې او د معیشت ښه کېدو له لارې د اقلیم د بیارغونې په پار ۱۰ میلیونه ډالر ځانګړي دي.

د چاپیریال ساتنې ملي ادارې د اقلیمي بدلون رییس روح‌الله امین وایي، چې دغه بودجه د نړۍوال چاپیریال اسانتیاوو له‌خوا د کم پرمختللو هېوادونو صندوق شورا غونډه کې تصویب شوې ده.

امین زیاته کړې، دغه پروژه به پنځو کلونو کې د کونړ او بدخشان ولایتونو کې پلي شي، چې موخه یې اقلیمي بدلون پر وړاندې ځنګل کرنې پیاوړتیا او اطرافي ټولنو معیشت ښه کېدل دي.

## د لوګر پوهنتون د لیلیې او خوړنځي جوړولو چارې پیل شوې

د لوګر د لوړو زده‌کړو مؤسسه کې د ۲۳ میلیونه افغانیو په د لګښت د یوې پروژې چارې پیل شوې دي.

د لوګر د لوړو زده‌کړو مؤسسې مطبوعاتي مسئول محمد نسیم ریحان ویلي چې په دغه مؤسسه کې د ۲۳ میلیونه افغانیو په لګښت د لیلیې ودانیو بیارغول، د خوړنځای او د یوه ګودام د جوړولو چارې پیل شوې دي. ۳مخ

## نورستان کې ۱۱ زره هکتاره ځمکه د کښت وړ ګرځېدلې

د نورستان ولایت چارواکي وايي، چې د دغه ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست او موسسو لخوا په بېلابېلو ولسوالیو کې ۱۱ زره هکتاره ځرځایونه، چې د واورې د ښویدنې او سېلابونو له امله له منځه تللي وو بیارغول... ۳مخ

## بادغیس کې د لوړ تناژ تله نصب شوې

بادغیس ولایت ځایي مسئولین وايي چې د دهن تګاب اسماعیل په سیمه کې د ۴.۵ میلیونه افغانیو په لګښت د لوړ تناژ تلې د نصبولو چارې د ځایي مسئولینو په شتون کې پیل شوې دي.

د پروژې د پرانیستې په مراسمو کې بادغیس والي حافظ د دې پروژې پر اهمیت ټینګار وکړ او ویې ویل، چې په یاد ولایت کې به د ټرانسپورټ او سوداګرۍ د بهیر د ښه والي لپاره هر اړخیزې... ۳مخ

## نورستان کې ګرانبیه ډبرې پلورل شوي

نورستان ولایت د کانونو او پټرولیم ریاست مسئولین وايي، چې د دغه ولایت د دواب ولسوالۍ د ماوي کانونو څخه ترلاسه شوي بیروج، کنزیټ او مارګانیټ قیمتي ډبرې د ۶۴ میلیونه ۷۶۸ زره ۶۵۰ افغانیو په ارزښت د ازادې بولۍ له لارې وپلورل شوې. ۳مخ

## ننګرهار کې د موتیا ګلانو نمایشي قطعې جوړې شوې

د ننګرهار ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي چې د دغه ولایت په شپږو ولسوالیو کې د څه باندې یو میلیون افغانیو په لګښت د موتیا ګلانو نمایشي قطعې جوړې شوې دي.

د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رییس باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي چې د کرنې وزارت په مالي ملاتړ د ۱.۳۷ میلیونه افغانیو په لګښت د دغه ولایت په بهسود، حصارک، سره رود، چپرهار، لعلپوره او مومندرې ولسوالیو کې پر لس جریبه ځمکه د موتیا ګلانو نمایشي قطعې جوړې شوې دي. ۳مخ

# نړۍ ځار

## امریکا کې مرګوني توپان لسګونه تنه وژلي

نړیوالو رسنیو راپور ورکړی چې د امریکا په جنوب ختیځو او مرکزي ایالتونو کې د خونړي توپان له امله درانه مالي زیانونه اوښتي او تر دې دمه د ۳۴ کسانو د مړینې راپوروونه هم ورکړل شوي دي.

اسوشیټیډ پریس راپور ورکړی چې د دغو خونړیو بادونو سرعت په یو ساعت کې ۸۰ کیلو مترو ته رسېده، او له سخت باران او سیلابونو سره یو ځای یې په میزوری، آرکانزاس، مسیسیپي، الاباما، ټینیسي، اوهایو، انډیانا او کینټکي ایالتونو کې درانه مالي زیانونه اړولي دي.

د راپوروونو له مخې دا توفان تېره پنجشنبې د مارچ په ۱۳مه په جنوبي هوارو سیمو کې پیل شو، د جمعې او شنبې په ورځو کې یې د ختیځ په لور د حرکت پر وخت کې شدت وموند. د توفان وړاندوینې مرکز په وینا، په اتو ایالتونو کې له ۴۰ څخه ډېر توپانونه ثبت شوي دي.

ویل کېږي په میزوري کې ۱۲ کسان مړه شوي چې پنځه یې د وین په ښندو کې د یو کور د کنډوالو په منځ کې موندل شوي دي. بلخوا په میسی سی پي کې هم د شپږو کسانو مړینه او د دریو د لادرکه کېدو راپوروونه ورکړل شوي دي.

## حمله هوایی امریکا بر نیروهای حوثی در یمن

به دنبال حمله طیارات جنگی امریکا به مواضع نیروهای حوثی در یمن، وزارت صحت این کشور از کشته و زخمی شدن بیش از ۲۰ تن در نتیجه آن خبر می‌دهد.

بربنیاد معلومات وزارت صحت یمن، سیزده تن در نتیجه این حملات که چند بخش در صنعا، پایتخت این کشور آماج قرار گرفته کشته و نُه تن دیگر، زخمی شده‌اند.

رسانه‌های دولتی در یمن نیز وقوع حملات هوایی امریکا به مواضع نیروهای این کشور در پایتخت را گزارش داده‌اند.

طیارات جنگی امریکا به دستور دونالد ترامپ، رئیس جمهور این کشور یک رشته حملات را بر بخش‌هایی از تاسیسات مربوط به نیروهای حوثی، انجام دادند.

او افزوده، این حملات در واکنش به هدف قرار گرفتن کشتی‌های امریکایی در دریای سرخ از سوی نیروهای حوثی بر مواضع تسلیحاتی آنان صورت گرفته است.

## امریکا کې د سویلي افریقا سفیر پر توکم پالنې تورن شوی

د امریکا د بهرنیو چارو وزیر مارکو روبیو ویلي، چې امریکا د سویلي افریقا سفیر له دې هېواد باسي.

نوموړي دغه سفیر په «توکم پالنې» تورن کړی او زیاته کړې یې ده، چې هغه له ټرامپ څخه نه یوازې کرکه؛ بلکې د ولسمشر له سیاست سره مخالفت لري.

د امریکا د بهرنیو چارو وزارت ویاند ویلي، چې هغه باید د مارچ تر ۲۱مې پورې له دې هېواد څخه ووځي.